

# ملي سرود

دا وطن افغانستان دی
دا عزت د هر افغان دی

کور د سولې کور د تورې
هر بچی یې قهرمان دی

دا وطن د ټولو کور دی
د بلوڅو د ازبکو

د پښتون او هزاره وو
د ترکمنو د تاجکو

ورسره عرب، گوجر دي
پامیریان، نورستانیان

براهوي دي، قزلباش دي
هم ایماق، هم پشه یان

دا هېواد به تل ځلیږي
لکه لمر پر شنه آسمان

په سینه کې د آسیا به
لکه زړه وي جاویدان

نوم د حق مو دی رهبر
وایو الله اکبر وایو الله اکبر

## د کتاب ځانګړتیاوې


**مضمون:** پښتو

**مؤلفین:** د تعلیمي نصاب د پښتو ژبې او ادبیاتو څانګې د درسي کتابونو مؤلفین

**اډیټ کوونکي:** د پښتو ژبې د ایډیټ ډیپارتمنټ غړي

**ټولګی:** څلورم

**د متن ژبه:** پښتو

**انکشاف ورکوونکی:** د تعلیمي نصاب د پراختیا او درسي کتابونو د تألیف لوی ریاست

**خپروونکی:** د پوهنې وزارت د اړیکو او عامه پوهاوي ریاست

**د چاپ کال:** ۱۳۹۸ هجري شمسي

**د چاپ ځای:** کابل

**چاپخونه:**

**برېښنالیک پته:** curriculum@moe.gov.af



د درسي کتابونو د چاپ، وېش او پلورلو حق د افغانستان اسلامي جمهوریت د پوهنې وزارت سره محفوظ دی. په بازار کې یې پلورل او پېرودل منع دي. له سرغړوونکو سره قانوني چلند کیږي.

## د پوهنې د وزیر پیغام

اقرأ باسم ربک

د لوی او ښښونکي خدای ﷻ شکر په ځای کوو، چې موږ ته یې ژوند رابښلی، او د لوست او لیک له نعمت څخه یې برخمن کړي یو، او د الله تعالی پر وروستي پیغمبر محمد مصطفی ﷺ چې الهي لومړنی پیغام ورته (لوستل) و، درود وایو.

څرنګه چې ټولو ته ښکاره ده ۱۳۹۷ هجري لمریز کال د پوهنې د کال په نامه ونومول شو، له دې امله به د ګران هېواد ښوونیز نظام، د ژورو بدلونونو شاهد وي. ښوونکی، زده‌کوونکی، کتاب، ښوونځی، اداره او د والدینو شوراګانې د هېواد د پوهنیز نظام شپږګوني بنسټیز عناصر بلل کیږي، چې د هېواد د ښوونې او روزنې په پراختیا او پرمختیا کې مهم رول لري. په داسې مهم وخت کې د افغانستان د پوهنې وزارت د مشرتابه مقام، د هېواد په ښوونیز نظام کې د ودې او پراختیا په لور بنسټیزو بدلونونو ته ژمن دی.

له همدې امله د ښوونیز نصاب اصلاح او پراختیا، د پوهنې وزارت له مهمو لومړیتوبونو څخه دي. همدارنګه په ښوونځیو، مدرسو او ټولو دولتي او خصوصي ښوونیزو تأسیساتو کې، د درسي کتابونو محتوا، کیفیت او توزیع ته پاملرنه د پوهنې وزارت د چارو په سر کې ځای لري. موږ په دې باور یو، چې د باکیفیته درسي کتابونو له شتون پرته، د ښوونې او روزنې اساسي اهدافو ته رسېدلی نشو.

پورتنیو موخو ته د رسېدو او د اغېزناک ښوونیز نظام د رامنځته کولو لپاره، د راتلونکي نسل د روزونکو په توګه، د هېواد له ټولو زړه سواندو ښوونکو، استادانو او مسلکي مدیرانو څخه په درناوي هیله کوم، چې د هېواد بچیانو ته دې د درسي کتابونو په تدریس، او د محتوا په لېږدولو کې، هیڅ ډول هڅه او هاند ونه سپموي، او د یوه فعال او په دیني، ملي او انتقادي تفکر سمبال نسل په روزنه کې، زیار او کوښښ وکړي. هره ورځ د ژمنې په نوي کولو او د مسؤولیت په درک سره، په دې نیت لوست پیل کړي، چې د نن ورځې ګران زده‌کوونکي به سبا د یوه پرمختللي افغانستان معماران، او د ټولنې متمدن او ګټور اوسېدونکي وي.

همدا راز له خوږو زده کوونکو څخه، چې د هېواد ارزښتناکه پانګه ده، غوښتنه لرم، څو له هر فرصت څخه ګټه پورته کړي، او د زده کړې په پروسه کې د ځیرکو او فعالو ګډونوالو په توګه، او ښوونکو ته په درناوي سره، له تدریس څخه ښه او اغېزناکه استفاده وکړي.

په پای کې د ښوونې او روزنې له ټولو پوهانو او د ښوونیز نصاب له مسلکي همکارانو څخه، چې د دې کتاب په لیکلو او چمتو کولو کې یې نه ستړې کېدونکې هلې ځلې کړې دي، مننه کوم، او د لوی خدای ﷻ له دربار څخه دوی ته په دې سپېڅلې او انسان جوړوونکې هڅې کې بریا غواړم.

د معیاري او پرمختللي ښوونیز نظام او د داسې ودان افغانستان په هیله چې وګړي یې خپلواک، پوه او سوکاله وي.

د پوهنې وزیر

دکتور محمد میرویس بلخي

# فهرست

## لومړی لوست

# حــمــد

**موخه**: د متن سم لوستل، لیکل او د حمد په معنا پوهیدل.





### پوښتنه

د حمد په اړه څوک څه ویلای شي؟

**په نامه د هغه خدای مې دا بیان دی**
**چې یو نوم یې په نومونو کې سبحان دی**
**هم پادشاه دی د جمله و پادشاهانو**
**هم د هر یوه سلطان په سر سلطان دی**
**په سجده یې ځمکې سر دی لګولی**
**هم یې څوړند په رکوع سره آسمان دی**

(اروابناد عبدالرحمن بابا)

## فعالیتونه

ـ یو زده کوونکی دې له ښوونکي وروسته حمد ولولي او نور دې وریسې تکرار کړي.

ـ دوه دوه زده کوونکي دې د تختې مخې ته راشي، یو دې ورته یوه جمله د کتاب له مخې ولولي، بل دې د املا په توګه پر تختې ولیکي، نور دې په کتابچو کې ولیکي.

ـ څو زده کوونکي دې په وار سره د ټولګي مخې ته راشي، د حمد په باب دې خبرې وکړي.

ـ دوه زده کوونکي دې لاندې بیتونه د تختې پر مخ ولیکي او بشپړ دې کړي.

په نامه د هغه خدای مې ................. دی
چې یو نوم یې په.................. کې سبحان دی

| لغتونه | معناوې |
|---|---|
| حمد | د الله جل جلاله ستاینه |
| سلطان | پاچا |
| سبحان | پاک |

## کورنی دنده

زده کوونکي دې د حمد مطلب په خپلو کتابچو کې ولیکي، بله ورځ دې په ټولګي کې نورو ته ولولي.

# نعت

**موخه**: د متن سم لوستل، لیکل او د نعت په مطلب پوهېدل.





## پوښتنې

ــ څوك ویلی شي چې مورږ او تاسې د چا امتیان یو؟

ــ څه فکر کوئ چې نعت د چا په هکله ویل کېږي؟

**زمـــوږ ښـکـلـی پـیـغـمـبـر دی مـحـمـد رســـول الله**

**د تـمـام جـهـان رهـبـر دی مـحـمـد رســـول الله**

**خـدای سپیڅلی دی ساتلی له ورې ګناه نه هم**

**مـلایـک نـه دی بـشـر دی مـحـمـد رســـول الله**

**لـکـه لـمـر چـې تـــوره شـپـه رڼـا رڼـا کـه**

**ناپـوهـې تـه داســې لـمر دی محمد رسـول الله**

## فعالیتونه

ـ یو زده کوونکی دې له ښوونکي وروسته نعت ولولي، نور دې ورپسې تکرار کړي.

ـ دوه زده کوونکي دې په وار سره د (جهان، رهبر، سپیڅلي) کلمې پرتختې په جملو کې وکاروي، نور دې په کتابچو کې ولیکي.

ـ څو زده کوونکي دې په وارسره د نعت شریف د یوه، یوه بیت د مفهوم په اړه د نورو په وړاندې خبرې وکړي.

ـ څو زده کوونکي دې په وار سره د تختې مخې ته راشي یو یو بیت دې د املا په ډول پرتختې ولیکي.

| لغتونه | معناوې |
| --- | --- |
| رهبر | لارښوونکی |
| تمام | ټول |
| سپیڅلی | پاك |
| ورې | کوچنۍ |
| جهان | نړۍ |

## کورنۍ دنده

زده کوونکي دې د نعت شریف لنډ مفهوم په خپلو کتابچو کې ولیکي، بله ورځ دې په ټولګي کې نوروته ولولي.

دریم لوست

# حضرت عمر فاروق رضي الله عنه

**موخه**: د متن سم لوستل، لیکل او د حضرت عمر فاروق رضي الله عنه پېژندل.





**پوښتنه**

د حضرت محمد ﷺ په یارانو کې د فاروق لقب چا ته ورکړ شوی و؟

**حضرت عمر فاروق رضي الله عنه د حضرت محمد ﷺ دویم یار و. اصلي نوم یې عمر او د پلار نوم یې خطاب دی. د حضرت محمد ﷺ له خوا ورته د فاروق لقب ورکړل شوی او په (۲۹) کلنۍ کې د اسلام په مبارک دین مشرف شوی و. د خپل خلافت په وخت کې یې داسې ستر اسلامي کارونه کړي چې په نړۍ کې ساری نه لري، لس کاله، شپږ میاشتې او پنځه ورځې د مسلمانانو خلیفه و. د (۲۳) کلنۍ په عمر د ابو لولو له لوري شهید شو.**

## فعالیتونه

ـ یو زده کوونکی دې له ښوونکي څخه وروسته په لوړ مناسب غږ لوست ولولي.
ـ زده کوونکي دې متن په خپل منځ کې ولولي.

ـ څو زده کوونکي دې په وار سره د تختې مخې ته راشي، یو دې له لوست څخه څو کلمې ورته ووایي، بل دې پرتختې ولیکي او په جملو کې دې راوړي.

ـ څو زده کوونکي دې د ټولګي مخې ته راشي او د حضرت عمرؓ په اړه دې خبرې وکړي.

| لغتونه | معناوې |
|---|---|
| یار | ملګری |
| فاروق | د حق او باطل بیلوونکی |
| ساری | سیال، جوړه |
| نړۍ | جهان |

## کورنۍ دنده

زده کوونکي دې د نن ورځې لوست په خپلو کتابچو کې ولیکي او بل درسي ساعت کې دې له ځان سره راوړي.

## خلورم لوست

# انسان

**موخه**: د متن سم لوستل، لیکل، د انسان او انسانیت په مفهوم پوهېدل.





### پوښتنه

ستاسو په فکر د انسان ځانګړتیاوې کومې دي؟

**لوی الله جل جلاله انسان اشرف المخلوقات پیدا کړی، عقل او فکر یې ورکړی دی. انسان ته الله جل جلاله لارښوونه کړې ده چې علم زده کړي، د خپل علم او پوهې په واسطه ځان او خپل الله جل جلاله وپېژني، خپل ژوند ته پر سم لوري بدلون ورکړي، د یوې هوسا او آبادې ټولنې په جوړولو کې له علم او پوهې څخه کار واخلي. د الله جل جلاله د مخلوق خدمت وکړي، خپله انساني او ایماني دنده سرته ورسوي، ترڅو د دواړو جهانونو بریاوې یې په برخه شي.**



## فعالیتونه

ــ یو زده کوونکی دې له ښوونکي څخه وروسته پر مناسب غږ متن و لولي، نور زده کوونکي دې ورته غوږ ونیسي.

ــ څو زده کوونکي دې په وار سره د (توان، زیار، هوسا، مخلوق) کلمې د تختې پر مخ په جملو کې وکاروي، نور دې په خپلو کتابچو کې ولیکي.

ــ څو زده کوونکي دې په وار سره د ټولګي مخې ته راشي، د علم او زده کړې په هکله دې خبرې وکړي.

ــ څو زده کوونکي دې په وار سره له متن څخه یوه یوه جمله ووایي او نور دې هغه د املا په شکل په خپلو کتابچو کې ولیکي.

| لغتونه | معناوې |
|---|---|
| اشرف | غوره |
| مخلوقات | پیدا کړل شوی |
| هوسا | ارام |
| دنده | وظیفه |
| بریا | کامیابي |



## کورنۍ دنده

زده کوونکي دې د انسان او انسانیت په اړوند په خپلو کتابچو کې څو کرښې ولیکي.

## پنځم لوست

# بې پروايي

**موخه**: د متن سم لوستل، ليکل، د بې پروايۍ په مفهوم او زيانونو پوهېدل.





**پوښتنه**

ستاسو په فکر که په کوم کار کې بې پروايي وشي، څه به پېښ شي؟

**د يوه کار ناوړه او منفي پايلو ته پام نه کول، بې پروايي بلل کېږي.**

**سره له دې چې ښوونکي ټولو زده کوونکو ته لارښوونه کړې وه چې په ناپاکو اوبو کې ونه لامبي،اجمل يو بې پروا هلک و، پرته له دې چې خپلې روغتيا ته پاملرنه وکړي او د ښوونکي لارښوونې او سپارښتنې په پام کې ونيسي.**

**يوه ورځ چې له ښوونځي څخه رخصت شو، د لارې ترڅنګ يې په ناپاکو اوبو کې ولمبل. له دې امله ناروغ شو، ناروغۍ يې تر روغتون پورې ورساوه، ډاکټر له معاينې وروسته ورته لارښوونه وکړه چې له خپلې روغتيا سره بې پروايي ونه کړي، هېڅکله په ولاړو او ناپاکو اوبو کې ونه لامبي.**

## فعالیتونه

ـ زده کوونکي دې له ښوونکي څخه وروسته متن پرمناسب غږ ولولي.
ـ څو زده کوونکي دې په وار سره د (روغتیا، پاملرنه، څنګ، لمبل) کلمې پرتختې ولیکي او په جملو کې دې استعمال کړي.
ـ څو زده کوونکي دې د ټولګي مخې ته راشي او هر یو دې په وار سره د بې پروایۍ په اړوند یوه کیسه ووایي.
ـ درې زده کوونکي دې لاندې جملې پر تختې ولیکي او درې تنه نور دې په وار سره د جملو تش ځایونه پر مناسبو کلمو سره ډک کړي.

- اجمل یو بې پروا ............... و.
- له دې امله ............... شو.

ـ یو زده کوونکی دې څو جملې د کتاب له مخې نورو ته ووایي او نور دې د املا په توګه په کتابچو کې ولیکي.

| لغتونه | معناوې |
| --- | --- |
| سپارښتنه | لارښوونه |
| څنګ | اړخ |
| پاملرنه | توجه |

## کورنۍ دنده

زده کوونکي دې د بې پروایۍ په هکله څو کرښې ولیکي.

# ملالۍ

**موخه**: د متن سم لوستل، لیکل او د اتلې ملالۍ پېژندل.





**پوښتنې**

آیا تاسو د هېواد د ملي اتلو ښځو نومونه اورېدلي دي؟

څه فکر کوئ چې ملالۍ څوک وه؟

**ملالۍ د هېواد ملي اتله او يوه زړوره مېرمن وه. د ميوند په دښتې کې افغانان په تش لاس له انګريزانو سره په ډېرې تودې هوا کې په جګړې بوخت وو، تږدې و چې افغانان ماتې وخوري، په دې وخت کې ملالۍ بيرغ را پورته او د جګړې ډګر ته يې ور ودانګل، دا لنډۍ يې وويله:**

**که په ميوند کې شهيد نه شوې**
**خدايږو لاليه بې ننګۍ له دې ساتينه**

**ددې لنډۍ په اورېدو سره د افغانانو احساسات راوپارېدل او دښمن ته يې سخته ماتې ورکړه.**

## فعالیتونه

ـ زده کوونکي دې له ښوونکي څخه وروسته متن پر مناسب غږ ولولي.

ـ زده کوونکي دې د (اتله ـ ډګر ـ احساسات) کلمې په جملو کې استعمال کړي.

ـ دوه زده کوونکي دې په وار سره د لاندې لنډۍ پر مفهوم خبرې وکړي چې دا لنډۍ چا او دځه لپاره ویلې ده؟

**که په میوند کې شهید نه شوې**
**خدایږو لالیه بې ننګۍ له دې ساتینه**

ـ لاندې لغتونه چې معنا شوي دي تاسو یې په مناسبو جملو کې وکاروئ!

| لغتونه | معناوې |
|---|---|
| اتله | قهرمانه |
| ډګر | میدان |
| پاریدل | را پورته کېدل |

## کورنۍ دنده

زده کوونکي دې په خپلو کتابچو کې پورتنۍ لنډۍ ولیکي.

# کیسه

**موخه**: د متن سم لوستل، لیکل او د کیسې په مفهوم پوهېدل.





## پوښتنه

آیا تاسو له چا څخه کومه کېسه اورېدلې ده؟

**یوه ورځ یو پاچا پر لارې تېرېده، ګوري چې د لارې ترڅنګ یو سپین ږیری سړی په کار بوخت دی، نیالګي کښېنوي، پاچا تر سلام وروسته سپین ږیري ته ووېل:**

**ستا عمر پای ته رسېدلی، نشې کولای د دې نیالګیو مېوه وخورې، نو د څه لپاره لګیا یې؟**

**سپین ږیري ځواب ورکړ: نورو نیالګي کښېنولي، موږ یې مېوه خورو، موږ به یې کښېنوو چې نور یې مېوه وخوري.**

**پاچا ته د سپین ږیري ځواب په زړه پورې و، هغه ته یې انعام ورکړ.**

**سپین ږیری په خندا شو، ویې ویل: قربان دې شم، د نورو خلکو نیالګي څو کاله وروسته حاصل ورکوي، زما یې همدا اوس مېوه ونیوه، پاچا ته د سپین ږیري دې خبرې هم خوند ورکړ، بیا یې هم انعام ورکړ.**

## فعالیتونه

ـ یو زده کوونکی دې له ښوونکي څخه وروسته متن په لوړ غږ ولولي.

ـ زده کوونکي دې په څو ډلو وویشل شي په خپلو ډلو کې د کیسې په مفهوم خبرې وکړي، بیا دې د هرې ډلې استازی پایله نورو ته ووایي.

ـ زده کوونکي دې په متن کې مفردې او جمع کلمې پیدا او بیا دې په کتابچو کې ولیکي.

ـکه د کوم زده کوونکي لنډه کیسه زده وي، د تختې په مخکې دې نورو ټولګیوالو ته ووایي.

ـ دوه زده کوونکي دې د ټولګي مخې ته راشي، د نیالګیو د کښینولو د اهمیت په اړه دې خبرې وکړي.

| لغتونه | معناوې |
|---|---|
| خوند | مزه |
| بوخت | لګیا، مصروف |
| انعام | بخشش |
| حاصل | میوه |

## کورنۍ دنده

زده کوونکي دې یوه یوه لنډه کیسه په خپلو کتابچو کې ولیکي او بله ورځ دې په ټولګي کې نورو ته ولولي.

## اتم لوست

# د لمر ګټې

**موخه**: د متن سم لوستل، ليکل او د لمر په ارزښت او ګټو پوهېدل.





**پوښتنه**

ستاسو په اند لمر څه ګټې لري؟

**الله ﷻ لمر، ځمکه، سپوږمۍ او هر څه د انسانانو د ګټې لپاره پيدا کړي دي، لمر ځمکې ته رڼا او تودوخه ورکوي.**

**د لمر د تودوخې په واسطه غلې، دانې، مېوې او نور بوټې زرغونېږي او پخېږي چې ټول ژوندي موجودات ورڅخه تغذيه کېږي.**

**د لمر تودوخه سربېره له ډېرو نورو ګټو د ځمکې او هوا ډېر ميکروبونه هم وژني. خلک د اوبو او خونو د تودولو او د برېښنا د توليد لپاره له لمر څخه ګټه اخلي، وايي: هغو خونو ته چې لمر ننوځي، ډاکټر نه ورځي.**



## فعالیتونه

ـ زده کوونکي دې له ښوونکي څخه وروسته متن د یو او بل په مرسته ولولي.

ـ څو زده کوونکي دې په وار سره د متن یوه، یوه کرښه ولولي.

ـ څو زده کوونکي دې په وار سره د (میکروب، خونو، برېښنا) کلمې معنا او په جملو کې د تختې پرمخ وکاروي، نور دې په کتابچو کې ولیکي.

ـ څو زده کوونکي دې په وار سره د ټولګي مخې ته راشي د لمر د ګټو په اړوند دې خبرې وکړي.

| لغتونه | معناوې |
|---|---|
| برېښنا | برق |
| خونه | کوټه |
| تغذیه | خواړه ورکول |



## کورنۍ دنده

زده کوونکي دې د لمر د ګټو په اړه څو کرښې ولیکي، بله ورځ دې په ټولګي کې نورو ته ولولي.

نهم لوست

# زلزله

**موخه**: د متن سم لوستل، لیکل او د زلزلې په وخت کې د ځان ساتلو په لارو چارو پوهېدل.





## پوښتنه

آیا تاسو د زلزلې په هکله معلومات لرئ؟

**د ځمکې خوځېدلو ته زلزله وايي، د زلزلې سختوالی او دوام مالي او ځاني خطرونه را منځ ته کوي.**

**زده کوونکي باید د زلزلې پر خطرونو باندې وپوهېږي او د ځان ساتنې لپاره پوره چمتوالی ولري. خلک باید د زلزلې د پېښېدو په وخت له کوټو څخه د باندې ووځي، که له کوټو څخه د باندې وتلو وخت ونه لري، د کوټو په دروازو کې دې ودرېږي. باید له زړو دیوالونو او نړېدلو کورونو څخه لرې شي.**



## فعالیتونه

ـ دوه زده کوونکي دې په وار سره له ښوونکي څخه وروسته متن په لوړ غږ ولولي.

ـ زده کوونکي دې په څو ډلو وویشل شي د زلزلې په اړه دې خبرې وکړي، پایله دې د هرې ډلې استازی نورو ته واوروي.

ـ څو زده کوونکي دې په وار سره د تختې مخې راشي، د زلزلې په باب دې یوه یوه جمله پر تختې ولیکي، نور دې د تختې له مخې په خپلو کتابچو کې ولیکي.

ـ څو زده کوونکي دې په وار سره د ټولګي مخې ته راشي، له زلزلې څخه د ځان ساتنې په هکله دې نورو ته معلومات ورکړي او نور دې ورته غوږ ونیسي.

ـ ټول زده کوونکي دې لوست ته وګوري، هغه کلمې دې په نښه کړي چې له څلورو تورو څخه جوړې شوې وي، بیا دې څو تنه په خپل وار سره نورو ته ولولي.

| لغتونه | معناوې |
|---|---|
| خوځېدل | ښورېدل |
| چمتووالی | تیاری |
| نړېدل | وارنېدل، غورځېدل |



## کورنۍ دنده

زده کوونکي دې په خپلو کتابچو کې له زلزلې څخه د خوندیتوب په اړه څو جملې ولیکي، بله ورځ دې په ټولګي کې نورو ته واوروي.

# د ونو ګټې

**موخه**: د متن سم لوستل، لیکل او د ونو په ګټو پوهېدل.





## پوښتنه

ستاسو په اند ونې څه ګټې لري؟

**په هغو سیمو کې چې ونې ډېرې وي، هغه ځای ښکلی او سمسور ښکاري، ونې د هوا پر پاکوالي ډېره اغېزه لري، پاکه هوا د روغتیا لپاره ډېره اړینه ده.**
**زموږ په هېواد کې مېوه لرونکې او بې مېوې ونې ډېرې دي، له مېوو څخه یې ګټه ترلاسه کېږي. له لرګیو څخه یې دروازې، کړکۍ، مېزونه، څوکۍ او نور شیان جوړېږي. همدارنګه کورونه هم پرې تودېږي، له پاڼو څخه یې د حیواناتو د خوړو لپاره ګټه اخیستل کېږي.**

## فعالیتونه

ــ څو زده کوونکي دې له ښوونکي څخه وروسته متن په لوړ غږ ولولي.

ــ څو زده کوونکي دې په وارسره د (روغتیا، ګټه، خوړو) کلمې د تختې پرمخ په جملو کې وکاروي.

ــ څو زده کوونکی دې په وار سره د تختې مخې ته راشي یو دې ورته یوه جمله ووایي بل دې پر تخته ولیکي.

ــ څو زده کوونکي دې لاندې تشې جملې په خپلو کتابچو کې پر مناسبو کلمو سره ډکې کړي.

پاکه هوا .................. لپاره ډېره اړینه ده.

زموږ په هېواد کې مېوه لرونکي او بې .................. ونې شته.

ــ دوه زده کوونکي دې د ټولګي مخې ته راشي، په وار سره دې د مېوه لرونکو او بې مېوو ونو نومونه واخلي.

| لغتونه | معناوې |
|---|---|
| اړینه | ضروري |
| سیمه | ځای |
| اغېزه | تاثیر |
| روغتیا | صحت |
| سمسور | زرغون، شین |

## کورنۍ دنده

زده کوونکي دې د ونو د ګټو په اړه څو کرښې ولیکي، بله ورځ دې نورو ته واوروي.

# میرویس نیکه

**موخه**: د متن سم لوستل، لیکل او د میرویس نیکه پېژندل.





**پوښتنه**

له تاسو څخه څوک زموږ د هېواد د څو ملي مشرانو نومونه اخیستلای شئ؟

**میرویس نیکه د ښاه عالم خان زوی او د کندهار ولایت اوسېدونکی و. میرویس نیکه یو پوه او زړه سواند مشر و. له ټولو افغانانو سره یې مینه درلوده. افغانان یې یووالي ته رابلل. کله چې نوموړی د حج له ادا کولو وروسته هېواد ته راستون شو، خلکو ته یې د هېواد د خپلواکۍ د ګټلو لپاره د پاڅون بلنه ورکړه. ټولو افغانانو یې بلنه ومنله او دښمنان یې له خپلې خاورې وشړل. میرویس نیکه د خپلې واکمنۍ تر پایه د یوه ملي مشر په توګه کار وکړ. له دې امله د افغانستان خلکو هغه ته د نیکه لقب ورکړی دی چې تر اوسه یې ټول افغانان په همدې درانه نامه سره یادوي.**



## فعالیتونه

ـ یو زده کوونکی دې له ښوونکي څخه وروسته متن په مناسب غږ ولولي.

ـ زده کوونکي دې په خپلو ډلو کې متن له ځان سره ولولي.

ـ درې زده کوونکي دې د تختې مخې ته راشي، یو دې لاندې لغتونه پرتختې ولیکي او بل دې معنا کړي، دریم دې په جملو کې استعمال کړي.

(یووالی، پاڅون، مشر، هېواد)

ـ څو زده کوونکي دې په وار سره د ټولګي مخې ته راشي او د میرویس نیکه په اړه دې لنډې خبرې وکړي.

| لغتونه | معناوې |
|---|---|
| یووالی | اتحاد |
| پاڅون | د یوه چا پر وړاندې مبارزه |
| بلنه | دعوت |



## کورنۍ دنده

زده کوونکي دې د لوست متن په خپلو کتابچو کې په ښکلي لیك سره ولیکي.

## دولسم لوست

# د کور پاک ساتل

**موخه**: د متن سم لوستل، لیکل او د کور د پاک ساتلو په گټو پوهېدل.





### پوښتنه

ستاسو په فکر د کور پاک ساتل څه گټې لري؟

**د انسان د ژوند کولو لومړنی چاپېریال د هغه کور دی. هر چاته خپل کور ډېر گران وي. موږ باید د خپل کور پاکوالي ته ډېره پاملرنه وکړو، د خپلې او کورنۍ د روغتیا او سلامتیا لپاره باید خپل کور ښه پاک وساتو.**

**په حدیث شریف کې راغلي دي: «پاکوالی د ایمان یوه برخه ده».**

**نو زده کوونکي باید د کور غړو ته دا وښیي چې کالي، کمپلې، شړۍ، بړستنې، توشکې او د کور فرشونه پاک وساتي، په اونۍ کې یې یو ځل لمر ته واچوي، ترڅو یې میکروبونه له منځه ولاړ شي.**



## فعالیتونه

ـ یو زده کوونکی دې له ښوونکي څخه وروسته پر مناسب غږ متن ولولي.

ـ زده کوونکي دې په خپلو منځونو کې د یو بل په مرسته متن ولولي.

ـ څو زده کوونکي دې په وار سره پر تختې باندې د لاندې جملو تش ځایونه پر مناسبو کلمو سره ډک کړي:

- د انسان د ژوند کولو لومړنی ........... د هغه کور دی.
- پاکوالی د ........ یوه برخه ده.
- موږ باید د خپل کور ............. ته ډېره پاملرنه کوو.

ـ څو زده کوونکي دې په وارسره د ټولګي مخې ته راشي او د کور د پاکوالي په اړه دې خبرې وکړي.



## کورنۍ دنده

زده کوونکي دې لوست په خپلو کتابچو کې په ښکلي خط ولیکي.

# د ځنګلونو ګټې

**موخه**: د متن سم لوستل، لیکل او د ځنګلونو د ساتلو په ګټو پوهېدل.





**پوښتنه**

څوک ویلای شي چې ځنګلونه څه ګټې لري؟

**ځنګلونه د هېواد ارزښتمنې شتمنۍ دي. ځنګلونه د چاپېریال په ښکلا او د هوا په پاکوالي کې ښه اغیزه لري. په هغو سیمو کې چې ځنګلونه شتون لري، له سېلابونو څخه د کرنیزو ځمکو د وړلو مخنیوی کوي، زموږ په هېواد کې ځنګلونه د پکتیا، کونړ، نورستان، ننګرهار، لغمان، سمنګان، بادغیس او هرات په ولایتونو کې شته.**

**په ځنګلونو کې ځینې ونې بې مېوې او ځینې یې مېوه لرونکې دي، نو موږ ته په کار دي چې د الله ﷻ دغه لوی نعمت او ملي شتمنیو ته ځانګړې پاملرنه وکړو.**

## فعالیتونه

ـ یو زده کوونکی دې له ښوونکي څخه وروسته متن په مناسب غږ ولولي.

ـ یو یو زده کوونکی دې په هره ډله کې متن ولولي او نور دې ورته غوږ ونیسي.

ـ دوه زده کوونکي دې د تختې مخې ته راشي، یو دې ورته یوه جمله وایي بل دې پر تختې ولیکي.

ـ څو زده کوونکي دې په وار سره د ټولګي مخې ته راشي او د ځنګلونو د ګټو په اړه دې خبرې وکړي.

| لغتونه | معناوې |
| --- | --- |
| کرنیزې ځمکې | هغه ځمکې چې څه پکې کرل کېږي |
| شتمني | پانګه، سرمایه |

## کورنۍ دنده

زده کوونکي دې د ځنګلونو د ګټو په هکله په خپلو کتابچو کې څو جملې ولیکي.

خوارلسم لوست

# د ماشومانو حقونه

**موخه**: د متن سم لوستل، لیکل او د ماشومانو پر حقونو پوهېدل.





**پوښتنه**

له تاسو څخه چا تر اوسه په زور څه شی اخیستي دي؟

**د هېواد راتلونکی په ماشومانو پورې اړه لري.**

**ماشومان د کورنۍ د نورو غړو په شان ځانګړي حقونه لري. د اسلام سپیڅلي دین د ماشومانو د سالمې پالنې، روزنې، روغتیا او نورو حقونو ته د پاملرنې لارښوونه کړې ده، ماشومانو ته یې حق ورکړی دی چې د دوی نظر ته درناوی وشي، په اړوندو چارو کې ګډون وکړي، مشرانو ته یې هم په دې اړه لارښوونه او ټینګار کړی دی چې د دوی حقونه په پام کې ونیسي.**

## فعالیتونه

ـ ځو زده کوونکي دې له ښوونکي څخه وروسته پر مناسب غږ متن ولولي.

ـ دوه زده کوونکي دې د تختې مخې ته راشي، یو دې د کتاب له مخې یوه جمله ووایي او بل دې د املا په توګه پرتختې ولیکي، نور زده کوونکي دې پاملرنه وکړي.

ـ ځو زده کوونکي دې په وارسره د تختې مخې ته راشي، د (سپیڅلي، پالنه، ټینګار) کلمې پرتختې په جملو کې استعمال کړي، نور دې په کتابچو کې ولیکي.

ـ ځو زده کوونکي دې په وار سره دې د ټولګي مخې ته راشي، د ماشومانو د حقونو په اړه دې خبرې وکړي

| لغتونه | معناوې |
|---|---|
| پاملرنه | توجه، پام کول |
| سپیڅلی | پاک او مقدس |
| ګډون | برخه اخیستنه |

## کورنۍ دنده

زده کوونکي دې په کتابچو کې د ماشومانو د حقونو په اړه دوې جملې ولیکي.

# د تنباکو زیانونه

**موخه**: د متن سم لوستل، لیکل د تنباکو، نسوارو او سگرټو په زیانونو پوهېدل.





**پوښتنه**

څوک د تنباکو، نسوارو او سگرټو د زیانونو په اړه څه ویلای شي؟

**تنباکو یو نېشه يي بوټی دی. د خلکو ترمنځ په بېلابېلو ډولونو، لکه: سگرټ، نسوار او چلم کې کارول کېږي، تنباکو روغتیا ته زیان رسوي.**
**د تنباکو کارول غاښونه توروي، د معدې ناروغي رامنځ ته کوي او مالي زیانونه لري. موږ باید د تنباکو له کرلو او کارونې څخه لرې و اوسو.**
**د تنباکو او نورو نېشه يي بوټو کرل او پلورل ناروا کار دی.**

## فعالیتونه

ـ څو زده کوونکي دې له ښوونکي څخه وروسته متن په مناسب غږ ولولي.

ـ زده کوونکي دې د څو دقیقو لپاره د لوست متن په خپل منځ کې ولولي.

ـ دوه زده کوونکي دې په وار سره د تختې مخې ته راشي یو دې د لوست د متن یوه جمله ولولي او بل دې پرتختې ولیکي.

ـ څو زده کوونکي دې په وار سره په متن کې داسې کلمې پیدا کړي چې له پنځو تورو څخه جوړې شوې وي، بل زده کوونکی دې د تختې پر مخ ولیکي.

ـ څو زده کوونکي دې په وار سره د ټولګي مخې ته راشي او د تنباکو د زیانونو په اړه دې خبرې وکړي.

| لغتونه | معناوې |
| --- | --- |
| کرل | کښت |
| زیان | تاوان، ضرر |

## کورنۍ دنده

زده کوونکي دې د نن ورځې لوست په خپلو کتابچو کې په ښکلي لیک سره ولیکي او په بل درسي ساعت کې دې له ځان سره راوړي.

# نوکانو ته پاملرنه

**موخه**: د متن سم لوستل، لیکل او د نوکانو د پاك ساتلو په گټو پوهېدل.





**پوښتنه**

ستاسو په فکر که موږ نوکان پاك ونه ساتو څه به وشي؟

**نوکان پاک ساتل ډېرې گټې لري، په اونۍ کې یو ځل باید نوکان لنډ شي، خپل نوکان په غاښونو پرې نکړو او په خوله کې یې ونه وهو.**
**همدارنگه له ډوډۍ خوړلو څخه مخکې او وروسته لاسونه د امکان په صورت کې په صابون پاک پرېمنځو، ترڅو زموږ د ناروغۍ لامل نشي.**




ـ څو زده کوونکي دې په وار سره له ښوونکي څخه وروسته متن په مناسب غږ ولولي.

ـ زده کوونکي دې د څو دقیقو لپاره د لوست متن په خپل منځ کې ولولي.

ـ درې زده کوونکي دې د تختې مخې ته راشي، یو دې د لوست یوه جمله ووایي، دویم دې ولیکي او دریم دې یې تېروتنې سمې کړي.

ـ څو زده کوونکي دې په و ار سره د ټولګي مخې ته راشي او د نوکانو د پاک ساتلو پر ګټو دې خبرې وکړي.




زده کوونکي دې لاندې کلمې په جملو کې وکاروي:

(نوکان، لاسونه، ناروغي، غاښونه)

## اووه لسم لوست

# عـــلم

**موخه**: د متن سم لوستل، لیکل او د علم په ارزښت پوهېدل.






### پوښتنه

تاسو څه فکر کوئ چې علم څه ته وايي؟

**علم پوهې ته وايي، علم رڼا يي ده. د اسلام مبارک دين د علم د زده کړې لارښوونه کوي او د علم زده کړه يې پر هر مسلمان نارينه او ښځينه فرض کړې ده. د اسلام ستر پيغمبر حضرت محمدﷺ د علم د زده کړې په اړه فرمايي: ((علم زده کړئ که څه هم په چين کې وي.)) په بل ځای کې فرمايي: ((له زانګو څخه تر ګوره زده کړه وکړئ.))**

**د علم او پوهې په زده کړه کې د دنيا او آخرت ګټې پرتې دي، موږ بايد هڅه وکړو چې علم زده کړو.**

## فعالیتونه

ــ زده کوونکي دې له ښوونکي څخه وروسته متن پر مناسب غږ ولولي.

ــ ښوونکی دې زده کوونکي پر ډلو ووېشي، هرې ډلې ته دې سپارښتنه وکړي چې د لوست متن په خپلو منځو کې ولولي او بیا دې د هرې ډلې استازی د لوست د مطلب په اړوند نورو ته خبرې وکړي.

ــ څو زده کوونکي دې په وارسره د (علم، رڼا، دین) کلمې د تختې پرمخ په جملو کې وکاروي، نور دې په خپلو کتابچو کې ولیکي.

ــ دوه زده کوونکي دې په لاندې جملو کې تش ځایونه پر مناسبو کلمو سره ډک کړي.

- علم زده کړئ که څه هم په ............... کې وي.
- علم ........................ ده.
- مور بايد .....................علم زده کړو.

| لغتونه | معناوې |
| --- | --- |
| هڅه | کوښښ |
| پیغمبر | استازی |

## کورنۍ دنده

زده کوونکي دې د علم د ارزښت په هکله څو جملې ولیکي.

# ګلان

**موخه**: د متن سم لوستل، لیکل او د ډول ډول ګلانو پېژندل.





## پوښتنه

ــ تاسې څو ډوله ګلان پېژنئ؟

**زموږ په ګران هېواد کې ډول ډول ګلان پیدا کېږي. لکه: کشمالي، شبو، نرګس، ګلاب، چنبیلي، پتوني، داودي او داسې نور.**

**هر څوک ګلان په بڼونو، چمنونو او کورونو کې د ښایست او د چاپېریال د سمسورتیا لپاره کري او پالنه یې کوي.**

**له ګلانو څخه په زړه پورې عطرونه او درمل جوړېږي چې ډېر ارزښت لري. ګلان د انسان پر روغتیا او خوشحالۍ ډېره اغېزه لري.**

## فعالیتونه

ـ ځو زده کوونکي دې له ښوونکي څخه وروسته متن په مناسب غږ ولولي.

ـ درې زده کوونکي دې په وار سره د تختې مخې ته راشي او د لاندې جملو تش ځایونه دې پر مناسبو کلمو سره ډک کړي:

۱ـ زموږ په ګران هېواد کې ډول ډول .............. پیدا کیږي.

۲ـ د چاپېریال د سمسورتیا لپاره ............. او پالنه يې کوي.

۳ـ ګلان ................................. او خوشحالی ډېره اغیزه لري.

ـ ځو زده کوونکي دې د ټولګي مخې ته راشي او د ګلانو د ډولونو په اړه دې خبرې وکړي، نور دې ورته غوږ ونیسي.

ـ که کوم زده کوونکی بڼ لري، ودې وايي چې په هغه کې کومې ونې او ګلان شته.

| لغتونه | معناوې |
|---|---|
| سمسور | زرغون |
| درمل | دوا |
| بڼ | باغ |
| اغېزه | تاثیر |

## کورنۍ دنده

زده کوونکي دې د خپلې سیمې د ګلانو د ډولونو نومونه ولیکي، په بل درسي ساعت کې دې له ځان سره راوړي.

# د مېوو د پوستکو بې ځایه اچول

**موخه**: د متن سم لوستل، لیکل او د مېوو د پوستکو د بې ځایه اچولو په زیانونو پوهېدل.





## پوښتنه

له تاسو څخه څوک ویلای شي چې په لارو کې د مېوو د پوستکو اچول کوم زیانونه لري؟

**یوه ورځ زمری په ښوونځي کې له خپلو ملګرو سره د کېلو په خوړلو لګیا و او د کېلو پوستکي يې په بې پروايۍ سره په لاره کې غورځول. اجمل چې ټولګي ته روان و، پام يې نه و، پښه يې د کېلې په پوستکي کېښوده. وغورځېده او سخت ژوبل شو، په روغتون کې وروسته له معاينې څخه څرګنده شوه چې د پښې هډوکی يې مات شوی دی، ډاکټر ورته نسخه ورکړه او لارښوونه يې ورته وکړه چې خپلې پښې ته ډېره پاملرنه وکړي، اجمل د ډاکټر خبرې په پام کې ونیولې، ويې ویل چې له دې وروسته به اجمل او نور ماشومان وپوهوي چې د مېوو پوستکي بې ځايه ونه غورځوي.**



## فعالیتونه

ـ زده کوونکي دې له ښوونکي څخه وروسته متن په مناسب غږ ولولي.

ـ زده کوونکي دې د لوست متن په خپلو منځو کې ولولي.

ـ څو زده کوونکي دې په وار سره د تختې مخې ته راشي یو دې له لوست څخه ورته یوه جمله ووایي او بل دې پر تختې ولیکي

ـ څو زده کوونکي دې په وار سره د ټولګي مخې ته راشي او د مېوو د پوستکو د بې ځایه غورځولو په زیانونو دې خبرې وکړي.

ـ څو زده کوونکي دې په وار سره د ټولګي مخې ته راشي او د پاك چاپېریال په اړه دې خبرې وکړي.

| لغتونه | معناوې |
|---|---|
| لارښوونه | رهنمایي |
| روغتون | شفاخانه |
| ژوبل | زخمي |
| غورځول | اچول |



## کورنۍ دنده

زده کوونکي دې د چاپېریال د پاك ساتلو په اړه څو کرښې ولیکي.

# راډيو

**موخه**: د متن سم لوستل، ليکل او د راډيو په اړه معلومات ترلاسه کول.






## پوښتنه

تاسو د راډيو په اړه څه ويلای شئ؟

**راډيو هغه غړيزه وسيله ده چې د هېواد او نړۍ د بېلابېلو موضوعاتو او پېښو په اړوند معلومات راکوي.**

**زموږ په هېواد کې د لومړي ځل لپاره د غازي امان الله خان د پاچاهۍ په دوره کې راډيو په رسمي توګه په خپرونو پيل وکړ.**

**اوس مهال زموږ په هېواد کې بېلابېلې راډيوګانې، لکه: ملي راډيو ټلويزيون، شمشاد، سپوږمۍ، ازادي، بي بي سي، اشنا غږ او نورې راډيوګانې خپرونې کوي.**

**موږ ته په کار دي چې د راډيو ښوونيزې او روزنېزې خپرونې واورو او په ورځني ژوند کې ترې ګټه واخلو.**

## فعالیتونه

ـ څو زده کوونکي دې له ښوونکي څخه وروسته متن په لوړ او مناسب غږ ولولي.

ـ څو زده کوونکي دې په وار سره د ټولګي مخې ته راشي او د راډیو په اړه دې یوه یوه جمله د تختې پرمخ ولیکي.

ـ درې زده کوونکي دې په وار سره د ټولګي مخې ته راشي او د راډیو په اړه دې لنډې خبرې وکړي.

ـ یو زده کوونکی دې له لوست څخه څو جملې ولولي او نور دې د املا په توګه په خپلو کتابچو کې ولیکي.

| لغتونه | معناوې |
| --- | --- |
| شمشاد | د افغانستان د یوه تاریخي غره نوم دی |
| دوره | د واکمنۍ موده |
| وسیله | واسطه |

## کورنۍ دنده

زده کوونکي دې په کورونو کې که امکان وي یوه راډیو واوري او بل درسي ساعت کې دې په ټولګي کې ووایي چې څه یې اورېدلي وو.

# کاغذ

**موخه**: د متن سم لوستل، لیکل او د کاغذ په گټو پوهېدل.





**پوښتنه**

ستاسو په فکر کاغذ څه گټې لري؟

**کاغذ هغه سپینه پاکه پاڼه ده چې له یو ډول لرگیو څخه جوړېږي او پر مخ یې لیک لیکل کېږي.**

**له کاغذ څخه کتابونه، کتابچې، مجلې، ورځپاڼې او نور ډول ډول شیان جوړېږي، که کاغذ نه وای په زده کړو کې به ډېرې ستونزې رامنځ ته شوې وای، علم او پوهه د کاغذ په وسیله له یوه نسل څخه بل نسل ته لېږدول کېږي، همدارنگه کاغذ د هر ډول لیک او معلوماتو د ساتلو او لېږد وسیله ده. موږ باید له کاغذ څخه سمه گټه واخلو او بې ځایه یې مصرف نه کړو.**

## فعالیتونه

ـ څو زده کوونکي دې په وار سره له ښوونکي څخه وروسته متن په مناسب غږ ولولي.

ـ زده کوونکي دې په خپلو کتابچو کې لاندې تشې جملې پر مناسبو کلمو ډکې کړي.

۱ـ کاغذ هغه سپینه پاکه ..................... ده.

۲ـ موږ باید له کاغذ څخه سمه ..................... واخلو.

ـ زده کوونکي دې په ډلو ووېشل شي او هره ډله دې په خپل منځ کې د کاغذ په اړه خبرې وکړي او پایله دې د هرې ډلې استازی نورو ته ووایي.

ـ دوه زده کوونکي دې د ټولګي مخې ته راشي یو دې د (کاغذ، لیک، علم، پوهې) کلمې پر تختې ولیکي بل دې یوه یوه کلمه په جملو کې وکاروي.

| لغتونه | معناوې |
|---|---|
| ستونزې | مشکلات |
| ورځپاڼې | اخبار |
| لېږد | له یوه ځایه بل ځای ته انتقال |

## کورنۍ دنده

زده کوونکي دې لوست په خپلو کتابچو کې په ښکلي لیک سره ولیکي.

## دوه و يشتم لوست

# احمدشاه بابا

**موخه**: د متن سم لوستل، ليکل او د هېواد د ملي واکمن احمدشاه بابا پېژندل.





**پوښتنه**

تاسو د احمدشاه بابا په اړه څه اورېدلي دي؟

**د احمدشاه بابا اصلي نوم احمدخان و، د ابدالي زمان خان زوی او په کندهار کې زېږېدلی و.**

**احمدشاه بابا د نادر افشار له مړينې څخه وروسته د قومي مشرانو د لويې جرګې له خوا د افغانستان پاچا وټاکل شو، په ډېر لږ وخت کې يې پياوړی مرکزي حکومت جوړ کړ.**

**احمدشاه بابا نه يوازې يو نامتو واکمن و، بلکې د پښتو او دري ژبو شاعر هم و. لکه چې ويلې يې دي:**

**که هر څو مې د دنيا ملکونه ډېر شي زما به هير نشي دا ستا ښکلي ډاګونه**

**د ډهلي تخت هېرومه چې را ياد کړم زما د ښکلي پښتونخوا د غرو سرونه**

**احمدشاه بابا له (۲۶) کالو پاچاهۍ وروسته له نړۍ سترګې پټې او په کندهار کې خاورو ته وسپارل شو.**



## فعالیتونه

ـ زده کوونکي دې له ښوونکي څخه وروسته په خپلو منځو کې لوست ولولي.

ـ دوه زده کوونکي دې د ټولګي مخې ته راشي یو دې ورته دکتاب له مخې یوه جمله ووایي، بل دې د املا په توګه پرتختې ولیکي، ښوونکی ورسره مرسته کوي.

ـ دوه زده کوونکي دې د تختې مخې ته راشي په وار سره دې د (پیاوړی، حکومت، واکمن) کلمې د تختې پرمخ په جملو کې استعمال کړي.

ـ څو زده کوونکي دې په وار سره د ټولګي مخې ته راشي او د احمدشاه بابا په اړه دې خبرې وکړي.

| لغتونه | معناوې |
|---|---|
| پیاوړی | غښتلی |
| ډهلي | د هندوستان پایتخت |



## کورنۍ دنده

زده کوونکي دې د احمدشاه بابا په اړه لوستل شوی لوست په خپلو کتابچو کې ولیکي، او په بل درسي ساعت کې دې له ځان سره راوړي.

درویشتم لوست

# خبرې اترې

**موخه**: د متن سم لوستل، لیکل په ژبه کې د خبرو اترو په اهمیت پوهېدل.





**پوښتنه**

څه فکر کوئ چې خبرې اترې د ژبې په زده کړه کې څه ګټه لري؟

**هیلۍ**: غوټۍ خورې ستړې مه شې!

**غوټۍ**: مننه، تاسو ستړې مه شئ.

**هیلۍ**: څنګه یې او چېرته روانه یې؟

**غوټۍ**: ښه یم، ښوونځي ته ځم.

**هیلۍ**: له ښوونځي څخه رخصت شوې نه یې؟

**غوټۍ**: خورې له ښوونځي رخصت یم، خو د ساینس له استاذې څخه یو څو پوښتنې کوم.

**هیلۍ**: ګرانې اوس به استاده په ښوونځي کې وي؟

**غوټۍ**: هو! له مور سره یې ژمنه کړې ده چې یو ساعت درته پاتې کېږم.

**هیلۍ**: چې داسې ده، نو په مخه دې ښه.

**غوټۍ**: د خدای ﷻ په آمان، ورځ دې په خیر.

## فعالیتونه

- درې زده کوونکي دې له ښوونکي څخه وروسته لوست په لوړ او مناسب غږ ولولي.

ـ زده کوونکي دې په خپلو ډلو کې د خبرو اترو په گټو بحث وکړي، پایله دې د هرې ډلې استازی نورو ته واوروي.

ـ دوه زده کوونکي دې د تختې مخې ته راشي د (ژمنه، امان، پاتې) کلمې دې په جملو کې استعمال کړي.

- دوه زده کوونکي دې د ټولگي مخې ته راشي یو ډیالوگ دې تمثیل کړي.

| لغتونه | معناوې |
| --- | --- |
| ژمنه | وعده |
| ستړې | ستومانه |




زده کوونکي دې په کورونو کې د خبرو اترو په اړه څو جملې ولیکي په بل درسي ساعت کې دې له ځان سره راوړي.

# کیسۍ

**موخه**: د متن سم لوستل، لیکل او د کیسیو په مفهوم پوهېدل.





**پوښتنه**

تاسو د کیسۍ په اړه معلومات لرئ؟

**هغه لنډې، خوږې وېناوې او پوښتنې دي چې ماشومان یې په لوبو کې له یو بل څخه پوښتي، لکه:**

**هغه څه شی دي؟**

**د ورځې ګرځي چې شپه شي د یوې روپۍ ځای نیسي.** (**امسا**)

**هغه څه شی دي؟**

**چې ووایم راځئ، نه راځي، چې ووایم مه راځئ، راځي.** (**شونډې**)

**هغه څه شی دي؟ ځي ځي مخ نه را اړوي.** (**اوبه**)

**هغه څه شی دي؟**

**ټوله ورځ ګرځي ګرځي چې شپه شي، خوله یې وازه پاتې وي.** (**بوټ**)

**هغه څه شی دي؟ سل خولې لري، نه ګېډه، نه کولمې لري.** (**غلبېل**)

## فعالیتونه

ـ یو زده کوونکی دې له ښوونکي څخه وروسته متن په مناسب غږ ولولي.

ـ زده کوونکي دې لوست په چوپه خوله په خپلو منځو کې ولولي.

ـ څو زده کوونکي دې په خپله خوښه په وار سره د تختې مخې ته راشي. یوه یوه کیسۍ دې ووایي نور دې ورته غوږ ونیسي.

ـ څو زده کوونکي دې په وار سره د ټولګي مخې ته راشي. د کیسۍ په اړه دې لنډې خبرې وکړي او نور دې ورته غوږ ونیسي.

| لغتونه | معناوې |
|---|---|
| امسا | د لاس لرګی، لکړه |
| ګیډه | خېټه |
| وینا | خبرې |
| لوبې | ساعت تېري |

## کورنۍ دنده

زده کوونکي دې په کور کې یوه یوه کیسۍ ولیکي، بله ورځ دې له ځان سره ټولګي ته راوړي، نورو ته دې واوروي.

## پنځه ویشتم لوست

# ترافیکي لارښوونې

**موخه**: د متن سم لوستل، لیکل، د ترافیکي اشارو پېژندل او په اړتیاوو یې پوهېدل.






### پوښتنه

که غواړئ له سړک څخه تېر شئ، څه باید وکړئ؟

**په ښارونو کې موټرونه، موټرسایکلونه، بایسکلونه او نور وسایط هرې خوا ته تګ راتګ کوي، په کار ده چې له سړک څخه د تېرېدو پر وخت د سړک دواړو خواوو ته وګورئ، بیا په پوره احتیاط له سړک څخه تېر شئ. د سړکونو پر غاړو درې ترافیکي څراغونه ځای پر ځای شوي دي. سور څراغ د درېدو، ژېړ څراغ د تیاري نیولو او شین څراغ له یوې خوا بلې خوا ته د تېرېدو نښه ده.**

## فعالیتونه

ـ څو زده کوونکي دې په وارسره له ښوونکي څخه وروسته لوست ولولي.

ـ زده کوونکي دې په خپلو ډلو کې د ترافیکي نښو د پېژندلو په اړه بحث وکړي، پایله دې د هرې ډلې استازی نورو ته واوروي.

ـ دوه زده کوونکي دې په وار سره د تختې مخې ته راشي، یو دې ورته د کتاب له مخې متن ولولي، هغه بل دې د املاء په ډول پر تختې ولیکي او نور دې په خپلو کتابچو کې ولیکي.

ـ دوه زده کوونکي دې په وار سره د ټولګي مخې ته راشي او د ترافیکي لارښوونو په اړه دې نورو ته معلومات ورکړي.

| لغتونه | معناوې |
|---|---|
| تېر | له یوې خوا بل پلوته اوښتل |
| غاړه | څنډه |
| احتیاط | پام کول |

## کورنۍ دنده

زده کوونکي دې د ترافیکي نښو او لارښوونو په اړه دوې جملې ولیکي، بله ورځ دې په ټولګي کې نورو ته ولولي.

شپږ ویشتم لوست

# د وخت ارزښت

**موخه**: د متن سم لوستل، لیکل او د وخت پر ارزښت پوهېدل.






**پوښتنه**

ستاسو په فکر وخت څه ارزښت لري؟

**هرې شیبې ته وخت وايي. وخت د سروزرو په شان ارزښت لري.**
**د نن کار سبا ته مه پرېږدئ. لیک او لوست وکړئ.**
**خپلې دندې له مهال وېش سره سمې ترسره کړئ!**
**ددې لپاره چې د ژوند په ټولو چارو کې بریالي و اوسئ، د وخت له هرې شیبې څخه سمه ګټه واخلئ.**

## فعالیتونه

ـ زده کوونکي دې له ښوونکي څخه وروسته له ځان سره لوست ولولي.

ـ څو زده کوونکي دې د تختې مخې ته راشي،په وار سره دې د وخت د ارزښت په هکله یوه یوه جمله پر تختې ولیکي، نور دې له تختې څخه په خپلو کتابچو کې ولیکي.

ـ دوه زده کوونکي دې د ټولګي مخې ته راشي په وار سره دې د وخت د ارزښت په اړه خبرې وکړي.

ـ څو زده کوونکي دې په وار سره د تختې مخې ته راشي، په خپلو کورونو کې دې د چارو د مهال وېش په اړوند نورو ته معلومات ورکړي.

| **لغتونه** | **معناوې** |
|---|---|
| مهال | وخت |
| مهال وېش | تقسیم اوقات |

## کورنۍ دنده

زده کوونکي دې د وخت د ارزښت په باب یوه مقاله ولیکي.

## اووه ويشتم لوست

# همت

**موخه**: د متن سم لوستل، ليکل او د همت په مفهوم پوهېدل.





**پوښتنه**

ستاسو په فکر همت څه ته وايي؟

**له حاتم طايي څخه چا پوښتنه وکړه، په دنيا کې دې تر خپل ځان د لوړ همت خاوند ليدلی دی؟**

**حاتم طايي ځواب ورکړ، هو. يوه ورځ مې د عربو سپين ږيري او مشران مېلمانه وو، هغوی ته مې څلوېښت اوښان حلال کړي وو. په دې وخت کې نږدې يوې دښتې ته وتلی وم، يو سړی مې وليد چې د لرګيو يوه لويه ګېډۍ يې پر شا وه، له هغه مې وپوښتل، د حاتم طايي مېلمستيا ته ولې نه ورځې؟ چې ډېر خلک يې پر دسترخوان راټول شوي دي؟ هغه وويل:**

**هغه څوک چې خوري ډوډۍ د خپله لاسه**

**د حاتم منت پرځان نه ږدي دپاسه**

**کله چې مې د هغه سړي لوړ همت وليد، له ځان سره مې وويل: په رښتيا دغه سړی په مېړانه او همت کې له ما څخه ډېر لوړ دی.**

## فعالیتونه

ـ زده کوونکي دې له ښوونکي څخه وروسته په خپلو منځو کې متن ولولي.

ـ دوه زده کوونکي دې د تختې مخې ته راشي، یو دې د کتاب له مخې یوه جمله ولولي او بل دې د املا په توګه پرتختې ولیکي، نور زده کوونکي دې په خپلو کتابچو کې ولیکي.

ـ دوه زده کوونکي دې د تختې مخې ته راشي یو دې د (مېلمه، حلال، دښتې) کلمې پرتختې ولیکي او بل دې په جملو کې استعمال کړي، نور زده کوونکي دې په کتابچو کې ولیکي.

ـ څو زده کوونکي دې په وار سره د ټولګي مخې ته راشي د همت په اړه دې خبرې وکړي.

| لغتونه | معناوې |
| --- | --- |
| همت | قوي اراده، مېړانه |
| منت | احسان |
| خاوند | څښتن |

## کورنۍ دنده

زده کوونکي دې د همت په اړوند څو جملې ولیکي.

اته ویشتم لوست

# د چاپېریال پاک ساتل

**موخه**: د متن سم لوستل، لیکل او د چاپېریال په اړه د معلوماتو ترلاسه کول.





## پوښتنه

ستاسو په فکر د چاپېریال پاک ساتل څه ګټې لري؟

**په کوم ځای کې چې موږ ژوند کوو، د چاپېریال په نوم یادېږي. غرونه، ځنګلونه، اوبه، بوټي، الوتونکي، ژوي او نور هرڅه د چاپېریال برخې دي. چاپېریال د نیالګیو په کښېنولو او د ګلانو په کرلو ښایسته کېږي. ښایسته او ښکلی چاپېریال ژوند او روغتیا ته ګټه رسوي.**

**له دې امله موږ ته په کار ده چې د خپل چاپېریال سمسورتیا، پاکوالي او ساتنې ته ښه پاملرنه وکړو، د نیالګیو لښتې ماتې نه کړو، ګلان یې ونه شکوو، تل اوبه ورکړو، ښه یې وساتو او له هغو څخه سمه ګټه واخلو.**

## فعالیتونه

ـ زده کوونکي دې له ښوونکي څخه وروسته متن ولولي.

ـ دوه زده کوونکي دې په وار سره د ټولګي مخې ته راشي، يو دې ورته د کتاب له مخې يوه جمله ولولي او بل دې د املا په توګه پرتختې وليکي.

ـ دوه زده کوونکي دې په وار سره د ټولګي مخې ته راشي او د چاپېريال په هکله دې خبرې وکړي.

ـ درې زده کوونکي دې د تختې مخې ته راشي يو دې د (ژوند، چاپېريال، سمسورتيا) کلمې د تختې پرمخ وليکي دويم زده کوونکی دې په جملو کې وکاروي او که تېروتنې ولري دريم زده کوونکی دې ورته اصلاح کړي ښوونکی ورسره مرسته کوي.

| لغتونه | معناوې |
|---|---|
| چاپېريال | محيط |
| سمسور | آباد، زرغون |

## کورنۍ دنده

زده کوونکي دې د چاپېريال په هکله څو جملې وليکي.

نهه ویشتم لوست

# واکسین

**موخه**: د متن سم لوستل، لیکل او د واکسینو په گټو پوهېدل.





## پوښتنه

ستاسو په فکر واکسین څه گټه لري؟

**د واکسین کول زموږ په بدن کې د میکروبونو د پرمختگ مخه نیسي، په دې معنا، څوک چې د کومې ناروغۍ واکسین وکړي، له هغې ناروغۍ څخه خوندي پاتې کیږي او هغه ناروغي یې نه نیسي.**

**واکسین ډېر مهم او گټور دي، کولای شو په لږ لگښت سره د ځینو ناروغیو مخنیوی وکړو. موږ ته په کار دي چې خپلو ماشومانو، تنکیو ځوانانو او لویانو ته پرخپل وخت د بېلابېلو ناروغیو، لکه: گوزڼ، تورټوخي، شري، غټو دانو، تیتانوس او نورو واکسین وکړو او له ډېرو خطرناکو ناروغیو څخه یې وژغورو.**

## فعالیتونه

ـ زده کوونکي دې له ښوونکي وروسته په خپلو منځو کې یو د بل په مرسته لوست ولولي.

ـ دوه زده کوونکي دې دتختې مخې ته راشي، یو دې د کتاب له مخې ورته یوه جمله ولولي، بل دې د املا په توګه پرتختې ولیکي.

ـ څو زده کوونکي دې د (بدن، واکسین، لګښت) کلمې په وار سره د تختې پرمخ په جملو کې وکاروي او نور دې په کتابچو کې ولیکي.

ـ څو زده کوونکي دې په وارسره د ټولګي مخې ته راشي، د واکسینو په هکله دې خبرې وکړي.

| لغتونه | معناوې |
| --- | --- |
| لګښت | مصرف |
| شری | یو ډول ناروغي |
| خوندي | په امن کې |

## کورنۍ دنده

زده کوونکي دې د واکسینو په هکله درې جملې ولیکي.

# رښتیا ویل

**موخه:** د متن سم لوستل، لیکل او د رښتیا ویلو په گټو پوهېدل.





**پوښتنه**

ستاسو په نظر رښتیا ویل څه گټې لري؟

**د اتل کورنۍ یو بڼ لري، یوه ورځ اتل په خپل بڼ کې یوې او بلې خوا ته گرځېده، د گرځېدو پر وخت یې په یوه تبر سترگې ولگېدې. تبر یې راواخیست، د یوې مېوې لرونکې ونې پوستکي یې پرې کړل، بله ورځ اتل له خپل پلار سره په بڼ کې گرځېده، ویې لیدل چې د یوې ونې پاڼې ژیړې شوې وې، پلار یې ډېر خواشینی شو، له اتل څخه یې پوښتنه وکړه، د دې ونې پوستکی چا پرې کړی دی؟ اتل پر وچو شونډو د پلار په ځواب کې وویل: د ونې پوستکی ما پرې کړی دی. زه په دې نه پوهېدم، چې ونه به وچه شي، پلار یې د ده په رښتیا ویلو ډېر خوشحاله شو، ورته ویې ویل: زویه! د ونو پوستکي څوک نه پرې کوي، ځکه بیا ونې وچېږي. له یوې خوا که څه هم د دې ونې په وچېدو ډېر خپه شوم، له بله پلوه ستا په رښتیا ویلو ډېر خوشحاله شوم، ځکه چې تا رښتیا وویل، رښتیا ویل تر زرو ونو ډېر ارزښت لري.**

## فعالیتونه

ــ زده کوونکي دې له ښوونکي څخه وروسته متن ولولي.

ــ څو زده کوونکي دې په وارسره د (بڼ، خوشحاله او پوستکی) کلمې د تختې پرمخ په جملو کې استعمال او نور دې په خپلو کتابچو کې ولیکي.

ــ زده کوونکي دې په خپلو کتابچو کې د لاندې جملو تش ځایونه پر مناسبو کلمو ډک کړي.

۱ ــ د اتل کورنۍ یو بڼ ......

۲ ــ د گرځېدو پر وخت یې په یوه ..... سترگې ولگیدې

۳ ــ رښتیا ویل تر زرو .... زیات ارزښت لري.

ــ درې زده کوونکي دې په وارسره د ټولگي مخې ته راشي، د رښتیا ویلو د گټو پر اړوند دې خبرې وکړي.

ــ څو زده کوونکي دې په وارسره د تختې پرمخ د رښتیا ویلو په اړوند دې یوه یوه جمله ولیکي.

| لغتونه | معناوې |
|---|---|
| بڼ | باغ |
| ارزښت | اهمیت |
| خواشینی | خفه |

## کورنۍ دنده

زده کوونکي دې په خپلو کورونو کې متن ولولي او بیا دې د رښتیا ویلو په اړه یوه مقاله ولیکي.

## يو دېرشم لوست

# افغانستان

**موخه**: د متن سم لوستل، ليکل او د خپل هېواد پېژندل.






**پوښتنه**

تاسو پوهېږئ چې افغانستان د نړۍ په کومې وچې کې پروت دی؟

**زموږ ګران هېواد افغانستان، ښه هوا او خوږې مېوې لري. ډېری او سېدونکي يې په کرنې او مالدارۍ بوخت دي.**

**زموږ د هېواد ټول اوسېدونکي قومونه، لکه: پښتانه، تاجک، ازبک، هزاره، ترکمن، بلوڅ، نورستانيان، پشه يان او نور د افغانانو په نوم يادېږي.**

**ټول افغانان د دې هېواد له هوا، اوبو، غلو دانو او مېوو څخه ګټه اخلي، د دې هېواد په لمن کې را لوی شوي دي، نو ځکه پر ټولو د مور په شان حق لري، بايد هر بچی يې په آبادۍ او ښيرازۍ کې برخه واخلي.**

## فعالیتونه

ـ یو زده کوونکی دې له ښوونکي څخه وروسته متن په لوړ او مناسب غږ ولولي.

ـ دوه زده کوونکي دې په وار سره د ټولګي مخې ته راشي، یو دې د کتاب له مخې یوه جمله ولولي، هغه بل دې د املا په ډول پرتختې ولیکي.

ـ درې زده کوونکي دې په وارسره د ټولګي مخې ته راشي، د ګران هېواد د آبادولو په اړه دې خبرې وکړي.

ـ څو زده کوونکي دې په وارسره د ټولګي مخې ته راشي، د (مالدارۍ، هېواد، ښیرازۍ) کلمې دې د تختې پرمخ په جملو کې استعمال کړي.

ـ یو زده کوونکی دې د ټولګي مخې ته راشي د تازه او وچو مېوو نومونه دې واخلي.

| لغت | معنا |
|---|---|
| ښېرازي | آبادي |

## کورنۍ دنده

زده کوونکي دې د ګران هېواد د آبادۍ او ښیرازۍ په اړوند څو جملې ولیکي، بله ورځ دې په ټولګي کې نورو ته واوروي.

# خواړه

**موخه**: د متن سم لوستل، لیکل د پاکو خوړو په اړتیاوو او ګټو پوهېدل.





**پوښتنه**

څه فکر کوئ چې خواړه څه ګټې لري؟

**ټولو هغو شیانو ته چې موږ يې خورو، خواړه ويل کيږي. ټول ژوندي موجودات د ژوند کولو لپاره خوړو ته اړتيا لري.**

**له خوړو پرته ژوند کول امکان نه لري، خواړه زموږ بدن ته وده او قوت ورکوي، بدن ته مو انرژي برابروي، ددې انرژۍ په واسطه موږ جسمي او فکري کارونه ترسره کوو، هغه خواړه چې زموږ د بدن ټولې اړتیاوې پوره کوي. شيدې، هګۍ، لوبيا، سابه، ډوډۍ، مېوې او نور دي.**

## فعالیتونه

ــ زده کوونکي دې له ښوونکي څخه وروسته په خپلو منځو کې لوست ولولي.

ــ څو زده کوونکي دې په وارسره د ټولګي مخې ته راشي، د خوړو په هکله دې یوه یوه جمله پر تختې ولیکي.

ــ څو زده کوونکي دې په وار سره د خوړو د ګټو په هکله خبرې وکړي.

ــ دوه زده کوونکي دې د تختې مخې ته راشي، یو دې ورته د کتاب له مخې یوه جمله ووایي، بل دې د املا په ډول پرتختې ولیکي، نور زده کوونکي دې په خپلو کتابچو کې ولیکي.

ــ څو زده کوونکي دې په وار سره د (خواړه، وده، بدن) لغتونه په جملو کې وکاروي.

| لغتونه | معناوې |
|---|---|
| بدن | وجود |
| انرژي | قوت |
| وده | لوېدل (نمو) |
| اړتیا | ضرورت |

## کورنۍ دنده

زده کوونکي دې د خوړو په اړه څو جملې ولیکي.

# خبرې اترې

**موخه**: د متن سم لوستل، ليکل او د ژبې زده کول.






## پوښتنه

آيا نن مو له چا سره خبرې اترې کړې دي؟

**ډېوه**: **السلام عليكم!**

**اوربل**: **وعليكم السلام، ستړې مه شې!**

**ډېوه**: **خير يوسې.**

**اوربل**: **تاسو په ژمي کې څه کارونه کول؟**

**ډېوه**: **موږ په ژمي کې د څلورم ټولګي درسونه لوستل.**

**اوربل**: **ډېر ښه، موږ هم خپل درسونه لوستل.**

**ډېوه**: **که خير و، موږ به د دې کال په اوړدو کې هم خپل درسونه ولولو.**

**اوربل**: **هو ډېوې! موږ به ښوونځي ته راځو، خپل درسونه به لولو، ترڅو ښې پايلې ترلاسه کړو.**

## فعالیتونه

ـ زده کوونکی دې له ښوونکي څخه وروسته په خپلو منځو کې لوست ولولي.

ـ دوه زده کوونکي دې د ټولګي مخې ته راشي، په خپل منځ کې دې یو له بل سره خبرې اترې وکړي.

ـ دوه زده کوونکي دې په وار سره د ټولګي مخې ته راشي، یو دې ورته یوه جمله د کتاب له مخې ولولي، بل دې د تختې پرمخ ولیکي، نور زده کوونکی دې په خپلو کتابچو کې ولیکي.

| لغت | معنا |
| --- | --- |
| پایلې | نتجې |

## کورنۍ دنده

ټول زده کوونکي دې په خپلو کتابچو کې یو یو ډیالوګ ولیکي، بله ورځ دې په ټولګي کې تمثیل کړي.

## څلور دېرشم لوست

# سخاوت

**موخه**: د متن سم لوستل، لیکل او د سخاوت په مفهوم یې پوهېدل.





**پوښتنه**

ستاسو په اند سخاوت څه ته وايي؟

**که یو څوک د خپل مال، پیسو او نورو شیانو څخه یو څه د الله ﷻ د رضا لپاره یوه محتاج او اړ انسان ته ورکړي، سخاوت بلل کیږي.**

**سخاوت د اسلام د سپیڅلي دین له مخې ډېر ښه عمل دی. که چېرې څوک له یوه بې وزله انسان سره د خپل توان په اندازه مرسته وکړي، دې انسان ته سخي او د الله ﷻ دوست ویل کیږي.**

**الله ﷻ سخي انسان ته په دنیا او اخرت کې اجرونه او ثوابونه ورکوي، لکه چې یو شاعر وايي:**

**دا دنیا په سخاوت سره زیاتېږي　　　　د کوهي اوبه چې باسي لا زیاتېږي**



## فعالیتونه

ـ زده کوونکي دې له ښوونکي څخه وروسته متن له ځان سره ولولي.

ـ څو زده کوونکي دې په وار سره د ټولګي مخې ته راشي لاندې لغتونه دې په جملو کې وکاروي.

(سخاوت، سخي، سپېڅلی)

ـ څو زده کوونکي دې په وار سره د تختې مخې ته راشي، د سخاوت په اړه دې یوه جمله پر تختې ولیکي، نور دې د تختې له مخې په خپلو کتابچو کې ولیکي.

ـ څو زده کوونکي دې په وار سره د سخاوت په هکله خبرې وکړي.

| لغتونه | معناوې |
|---|---|
| محتاج | اړ |
| سخاوت | د الله ﷻ په نوم چا ته څه ورکول |
| بې وزله | اړ او محتاج |



## کورنۍ دنده

زده کوونکي دې د سخاوت په اړوند یوه کیسه ولیکي او په بل درسي ساعت کې دې ټولګیوالو ته ووایي.

# د مور او پلار خدمت

**موخه**: د متن سم لوستل، لیکل، د مور او پلار د حقونو پېژندل.





**پوښتنه**

ستاسو په فکر مور او پلار په خپلو بچیانو کوم حقونه لري؟

**ټولو مسلمانانو او په ځانګړي ډول ماشومانو ته په کار ده چې د مور او پلار خدمت، درناوی او عزت وکړي، د اړتیا پر وخت ورسره مرسته وکړي، لکه چې په حدیث شریف کې راغلي دي: (جنت د مور او پلار تر پښو لاندې دی.)**

**له مور او پلار سره په مرسته او خدمت لوی الله ﷻ او د هغه رسول ﷺ خوشحالیږي.**

**موږ ته په کار ده چې تل د مور او پلار خبرو ته غوږ ونیسو، شپه او ورځ د هغوی خدمت وکړو، ترڅو د دوی دعا او د الله ﷻ رضا مو به برخه شي.**

## فعالیتونه

ـ زده کوونکي دې له ښوونکي څخه وروسته متن ولولي.

ـ څو زده کوونکي دې د (خدمت، اړتیا، مرسته) کلمې پرتختې په جملو کې استعمال کړي.

ـ څو زده کوونکي دې په وار سره د ټولګي مخې ته راشي، د مور او پلار د خدمت په هکله دې خبرې وکړي.

ـ څو زده کوونکي دې په وار سره د کتاب له مخې یوه یوه جمله ولولي، نور دې د املا په توګه په خپلو کتابچو کې ولیکي.

| لغتونه | معناوې |
|---|---|
| درناوی | احترام |
| مرسته | کومک |

## کورنۍ دنده

زده کوونکي دې په کورونو کې متن ولولي او بیا دې په خپلو کتابچو کې په ښکلي لیک ولیکي.

# نوم

**موخه**: د متن سم لوستل، لیکل او د نوم په مفهوم پوهېدل.






**پوښتنه**

ستاسو په فکر نوم څه ته وایي؟

**نوم: هغه خپلواکه کلمه ده چې یو څوک یا هم یو شی نوموي لکه: احمد، محمود، وړانګه، آس، اوښ، ونه، څوکۍ، او نور.**

**د اجمل پلار جمیل په کور کې یو کوچنی فارم جوړ کړی، په فارم کې چرګان، غواګانې او پسونه ساتي. اجمل په څلورم ټولګي کې زده کړې کوي، خو کله چې له ښوونځي څخه کور ته راشي، د خپلو درسونو ترڅنګ د کور په کارونو او د چرګانو په پالنې او ساتنې کې له پلار سره هم مرسته کوي، په لوست کې ډېر تکړه او د خپل ټولګي اول نومره دی.**




ـ زده کوونکي دې له ښوونکي څخه وروسته په خپلو منځو کې متن ولولي.

ـ زده کوونکي دې په ډلو وویشل شي، هره ډله دې د نوم په باب په خپل منځ کې خبرې وکړي، پایله دې د ډلې استازی نورو ته ولولي.

ـ څو زده کوونکي دې په وار سره د (چرګ، غوا، پسه او فارم) کلمې د تختې پر مخ په جملو کې استعمال کړي.

ـ یو زده کوونکي دې د کتاب له مخې دوې جملې ولولي او نور دې په کتابچو د املا په توګه ولیکي.
ـ یو زده کوونکی دې په لوست کې نومونه په ګوته او بل دې پر تختې ولیکي، دوه نور زده کوونکي دې په وار سره په جملو کې راوړي.

| لغتونه | معناوې |
|---|---|
| فارم | د چرګانو، حیواناتو د پالنې او ساتنې ځای |
| تکړه | لایق |




زده کوونکي دې په خپل چاپېریال کې د حیواناتو او نورو شیانو نومونه په کتابچو کې ولیکي.

# د چاپ صنعت

**موخه**: د متن سم لوستل، لیکل او د چاپ د ماشین په هکله د معلوماتو ترلاسه کول.




**پوښتنه**

آیا تاسې د چاپ ماشین په اړوند څه اورېدلي دي؟

**احمد چې ښکلي او رنګه کتابونه يې په لاس کې وو، له پلار څخه يې وپوښتل، پلاره! د چاپ ماشین چا جوړ کړی دی؟**

**پلار يې په ځواب کې ورته وويل: ډېر کلونه پخوا خلکو لیک نه پېژانده، له دې امله د مطلبونو په لېږد کې لويه ستونزه وه، وروسته بيا خلکو ليکل زده کړل، خو د ليکلو په چاپ ځوک نه پوهېدل، د لومړي ځل لپاره (ګوتنبرګ) له لرګي څخه توري جوړ کړل او د هغه په وسيله يې کتابونه چاپ کړل. اوس مهال د کمپيوټر په واسطه د چاپ چارې ترسره کېږي، چې د علم او زده کړې په ډګر کې يې ډېرې اسانتياوې رامنځ ته کړې دي.**

## فعالیتونه

ـ زده کوونکي دې له ښوونکي څخه وروسته په خپلو منځو کې لوست ولولي.

ـ څو زده کوونکي دې د لوست یوه یوه برخه پرلوړ غږ ولولي، نور دې ورته غوږ ونیسي، ښوونکی دې ورسره مرسته وکړي.

ـ څو زده کوونکي دې په وارسره دتختې مخې ته راشي د (لرګي، چاپ، ماشین) کلمې دې د تختې پرمخ په جملو کې وکاروي.

ـ څو زده کوونکي دې په وار سره د ټولګیوالو په وړاندې د چاپ صنعت په اړوند خبرې وکړي.

| لغتونه | معناوې |
| --- | --- |
| لېږد | انتقال |
| لیک | خط |
| مهال | وخت |
| ګوتنبرګ | د یوه عالم نوم دی |

## کورنۍ دنده

زده کوونکي دې متن ولولي او بیا دې د چاپ ماشین په اړوند څو جملې ولیکي، بله ورځ دې نورو ته واوروي.

# مفرد او جمع نومونه

**موخه**: د متن سم لوستل، ليکل، د مفرد او جمع نومونو پېژندل.

بسم الله الرحمن الرحيم

**مفرد او جمع نومونه**

| مفرد نوم | جمع نوم |
|---|---|
| هلكك | هلكان |
| قلم | قلمونه |
| تخته | تختې |



## پوښتنه

آيا تاسو مفرد او جمع نومونه پېژنئ؟

**مفرد نوم: هغه نوم ته وايي چې يوه شخص، يوه حيوان او يوه شي لپاره وکارول شي، لکه: هلک، پسه، کتاب، ونه او نور.**

**جمع نوم: هغه نوم دی چې پر زياتو کسانو، حيواناتو او شيانو دلالت وکړي، لکه: هلکان، پسونه، کتابونه، ونې او نور.**

| په جملو کې مفرد نومونه | په جملو کې جمع نومونه |
|---|---|
| دا هلک دی. | دا هلکان دي. |
| دا پسه دی. | دا پسونه دي. |
| دا کتاب دی. | دا کتابونه دي. |
| هغه ونه ده. | هغه ونې دي. |

## فعالیتونه

ـ زده کوونکي دې له ښوونکي څخه وروسته متن ولولي.

ـ دوه زده کوونکي دې په وار سره د تختې مخې ته راشي، یو دې څو مفرد نومونه پرتختې ولیکي او بل دې د هغه جمع ولیکي.

ـ دوه زده کوونکي دې د تختې مخې ته راشي، یو دې دوې جملې ولیکي چې مفرد نومونه پکې راغلي وي، بل دې د هغه نومونو جمع ولیکي.

ـ دوه زده کوونکي دې د ټولګي مخې ته راشي، یو دې مفرد نومونه او بل دې جمع نومونه پرتختې ولیکي، نور زده کوونکي دې هغه په کتابچو کې ولیکي.

| لغتونه | معناوې |
| --- | --- |
| کارول | استعمالول |
| حیوانات | څاروي |

## کورنۍ دنده

زده کوونکي دې پنځه پنځه جملې چې مفرد او جمع نومونه پکې راغلي وي په خپلو کتابچو کې ولیکي.

## نهه دېرشم لوست

# نيکي

**موخه**: د متن سم لوستل، ليکل، د نيکۍ په ګټو او مفهوم پوهېدل.





**پوښتنه**

ستاسو په فکر نيکي څه ته وايي او څه ګټې لري؟

**له يو چا سره په ژبه، لاس او مال مرسته کول نيکي بلل کېږي. ټول انسانان د يو بل مرستې او خوا خوږۍ ته اړتيا لري.**

**موږ بايد هر وخت له يو بل سره ښه وکړو. په دې اړه عبدالرحمن بابا څه ښه ويلي دي:**

**کـر د ګلـو کړه چې سيمه دې ګلـزار شي**
**اغزي مه کره په پـښو کې به دې خار شي**
**کـوهـي مه کـنه د بل سـړي پـه لار کـې**
**چېرې ستا به د کـوهـي پـه غاړه لار شي**



## فعالیتونه

ـ زده کوونکي دې له ښوونکي څخه وروسته متن ولولي.

ـ دوه زده کوونکي د تختې مخې ته راشي، هر یو دې په خپل وار سره د نیکۍ په اړه یوه یوه جمله پر تختې ولیکي.

ـ څو زده کوونکي دې په وارسره د نیکۍ په اړه د ټولګیوالو په وړاندې خبرې وکړي.

ـ څو زده کوونکي دې په وارسره د نیکۍ د ښېګڼو په اړه نورو ته معلومات ورکړي، ښوونکی مرسته او څارنه کوي.

| لغتونه | معناوې |
| --- | --- |
| کر | کرنه، زراعت |
| کنل | ایستل |
| کوهی | څاه |



## کورنۍ دنده

زده کوونکي دې د نیکۍ په اړه څو جملې ولیکي، بله ورځ دې نورو ته واوروي.

## څلوېښتم لوست

# متلونه

**موخه**: د متن سم لوستل، لیکل او د متلونو په مفهوم پوهېدل.






### پوښتنه

آیا تاسو متلونه اوریدلي دي؟

متلونه پخې او لنډې ویناوې دي، خلک یې په خپلو خبرو کې کاروي چې لوی مفهوم لري. متلونه خلکو ته د نصیحت لپاره کارول کیږي. متلونه زموږ د ولس پخوانیو مشرانو جوړ کړي چې له یوې پیښې څخه وروسته رامنځته شوي دي.

لکه دا متلونه:

پوره ورک دې کړل دوه کوره.

څه چې کرې هغه به ریبې.

خپل عمل د لارې مل.

کوم کار چې په سلا وي، هغه بې بلا وي.



## فعالیتونه

ـ زده کوونکي دې له ښوونکي څخه وروسته متن ولولي.

ـ زده کوونکي دې په خپلو ډلو کې د متلونو په اړه خبرې وکړي، بیا دې د هرې ډلې استازی، خپلې پایلې نورو ته واوروي.

ـ دوه زده کوونکي دې په وارسره یو یو متل پرتختې ولیکي، نور دې په کتابچو کې ولیکي.

ـ څو زده کوونکي دې په وارسره د متلونو په اړه د نورو په وړاندې خبرې وکړي.

ـ دوه زده کوونکي دې په خپله خوښه د ټولګي مخې ته راشي او داسې متلونه دې ووایي چې کتاب کې نه وي راغلي.

| لغتونه | معناوې |
|---|---|
| پخې | پرځای او محکمې |
| ولس | خلک |
| نصیحت | پند |



## کورنی دنده

زده کوونکي دې پورتني لغتونه په جملو کې استعمال کړي، بله ورځ دې په ټولګي کې نورو ته واوروي.



# د نوم ډولونه

**موخه**: د متن سم لوستل، لیکل، او د نوم د ډولونو پېژندل.






**پوښتنه**

آیا تاسو د نوم د ډولونو په اړوند څه اوریدلي دي؟

**مور به د نومونو له ډولونو څخه خاص او عام نومونه په دې لوست کې در وپیژنو؟**

**خاص نوم: هغه دی چې پر یوه خاص شخص او یا شي باندې د لالت وکړي، لکه: احمد شاه بابا، کندهار، ننګرهار، کابل، پغمان او نور.**

**عام نوم: هغه نوم دی چې د یوې ډلې پر ټولو غړو دلالت وکړي، لکه: هلک، نجلۍ، ونه، ډبره او نور.**




ـ زده کوونکی دې له ښوونکي څخه وروسته متن ولولي.

ـ څو زده کوونکي دې په وار سره په پورتني متن کې خاص نومونه پرتختې وليکي.

ـ څو زده کوونکي دې په وارسره په پورتني متن کې عام نومونه په گوته او پرتختې وليکي.

ـ دوه زده کوونکي دې د ټولګي مخې ته راشي، یو دې د عام نوم او بل دې د خاص نوم په اړه خبرې وکړي، ښوونکی دې ورسره مرسته وکړي.




زده کوونکي دې په خپلو کتابچو کې لس عام نومونه او لس خاص نومونه وليکي، بله ورځ دې نوروته ولولي.

دوه څلوېښتم لوست

# وزر ماتی مرغه

**موخه**: د متن سم لوستل، لیکل او په الوتونکو زړه سوی کول.





**پوښتنه**

ستاسو په اند پر الوتونکو زړه سوی څه گټې لري؟

**یوه ورځ احمد له خپل ملگري محمود سره په باغ کې د یوې ونې لاندې خپل درسونه لوستل. الوتونکي د بڼ په ونو کې یوې او بلې خوا ته الوتل، دوی د بڼ په یوې گوښې کې یو مرغه ولید چې وزر یې مات او الوتلی نه شي.**

**احمد مرغه را واخیست او له ځان سره یې کور ته یووړ او درملنه یې وکړه.**

**له څو ورځو وروسته مرغه جوړ شو. کله چې احمد په دې پوه شو چې د مرغه وزر جوړ شوی، له قفس څخه یې راوایست او خوشې یې کړ.**




ـ زده کوونکي دې له ښوونکي څخه وروسته متن ولولي.

ـ زده کوونکي دې پر ډلو وویشل شي، هره ډله دې په خپلو کې لوست ولولي، ستونزې دې د هرې ډلې استازی له ښوونکي وپوښتني.

ـ څو زده کوونکي دې په وار سره د (وزر، مات، گوښه) کلمې د تختې پرمخ په جملو کې وکاروي.

ـ څو زده کوونکي دې په وارسره د ټولگیوالو په وړاندې د الوتونکو په اړه خبرې وکړي.

| لغتونه | معناوې |
| --- | --- |
| بڼ | باغ |
| گوښه | څنگ |




زده کوونکي دې د کورنۍ د غړو په مرسته د الوتونکو په اړوند یوه لنډه کیسه په کتابچو کې ولیکي، بله ورځ دې له ځان سره راوړي او خپلو ټولگیوالو ته دې ولولي.

# د لويانو خبرې

**موخه**: د متــن سم لوستل، ليــکل او د لويانو د خبرو په ګټو پوهېدل.





**پوښتنه**

آيا تاسو ته د لويانو د خبرو اوريدل ګټور دي؟

**د لويانو خبرې هغه پخې په تول پوره ويناوې دي چې د ژوند په بېلابېلو اړخونو کې د تجربو له مخې ويل شوې وي. لکه:**

**د انسان برياليتوب، په قوي او غښتلي هوډ پورې تړلی دی.**

**هر څوک چې ادب نه لري، عقل نه لري.**

**د زده کړې لپاره هېڅ وخت، ناوخته نه دی.**

**پوه هغه څوک دی چې له خپلو تجربو پند واخلي.**

**برياليتوب د هغه چا په برخه دی، چې په خپل برياليتوب باور او ايمان لري.**

## فعالیتونه

ـ یو زده کوونکي دې له ښوونکي څخه وروسته په لوړ او مناسب غږ متن ولولي.

ـ زده کوونکي دې په خپلو ډلو کې د لویانو پرخبرو بحث وکړي. پایله دې د هرې ډلې استازی نورو ته واوروي.

ـ څو زده کوونکي دې په وار سره د ټولګي مخې ته راشي، هر یو دې د لویانو یوه یوه خبره نورو ته واوروي.

ـ څو زده کوونکي دې په وار سره د (تول، پخې، هوډ) کلمې د تختې پرمخ په جملو کې وکاروي، نور دې په کتابچو کې ولیکي.

| لغتونه | معناوې |
| --- | --- |
| غښتلي | قوي |
| پند | نصیحت |
| هوډ | اراده |

## کورنۍ دنده

زده کوونکي دې د کورنۍ د غړو په مرسته د لویانو څو خبرې ولیکي، بله ورځ دې نورو ته واوروي.

# د ناروغۍ رقعه

**موخه**: د متن سم لوستل، لیکل او د ناروغۍ پر رقعې پوهېدل.





**پوښتنه**

تاسو د ناروغۍ په وخت کې ښوونځي ته څنګه

خبر ورکوئ؟

**بريالی د ننګيالي زوی د څلورم ټولګي زده کوونکی**

**د عبدالرحمن بابا د ښوونځي مدير صاحب،**

**السلام علیکم ورحمة الله وبرکاته!**

**نن د ناروغۍ له امله ښوونځي ته درتلای نه شم، هیله ده چې د سوبتیا په کتاب کې ناسوب ونه ګڼل شم.**

**په درنښت**

## فعالیتونه

ـ څو  زده کوونکي دې په وار سره د ناروغۍ د رقعې یوه، یوه کرښه د کتاب له مخې پر تختې ولیکي، نور دې د تختې له مخې په کتابچو کې ولیکي.

ـ څو زده کوونکی دې د ناروغۍ له رقعې څخه یوه، یوه جمله د کتاب له مخې ولولي، بل دې د املا په توګه پر تختې ولیکي.

ـ زده کوونکي دې په وارسره د (ناروغۍ، رقعه، ناسوب) کلمې د تختې پرمخ په جملو کې استعمال کړي.

ـ څو زده کوونکي دې په وار سره د لاندې جملو تش ځایونه د تختې پرمخ پرمناسبو کلمو ډک کړي.

نن د ................... له ................. ښوونځی ته ................... نه شم.

| لغتونه | معناوې |
|---|---|
| ناسوب | غیر حاضر |
| سوبتیا کتاب | حاضرۍ کتاب |

## کورنۍ دنده

زده کوونکي دې په خپلو کتابچو کې د ناروغۍ رقعه ولیکي، بله ورځ دې په ټولګي کې نورو ته ولولي.



# پنځه څلوېښتم لوست

# خبرې اترې

**موخه**: د متن سم لوستل، لیکل او د خبرو اترو په ګټو او ارزښت پوهېدل.





**پوښتنه**

آیا تاسو کله له چا سره خبرې اترې کړې دي؟

**احمد**: السلام علیکم عالم خانه!

**عالم**: وعلیکم السلام احمده

**احمد**: په دې شپو ورځو کې څه کار کوې؟

**عالم**: وروره! کلنۍ آزموینه مو رانژدې ده، خپل درسونه لولم.

**احمد**: آزموینه مو څه وخت پیل کېږي؟

**عالم**: د لیندۍ د میاشتې په لومړۍ نېټه.

**احمد**: تر کومې نېټې پورې دوام کوي؟

**عالم**: د همدې میاشتې تر پنځلسمې نېټې پورې.

**احمد**: له آزموینې څخه وروسته څومره رخصتي لرئ؟

**عالم**: له آزموینې څخه وروسته درې میاشتې رخصتي لرو.

**احمد**: د ژمي په رخصتۍ کې څه کار کوئ؟

**عالم**: خپل درسونه لولم.

## فعالیتونه

ـ زده کوونکي دې له ښوونکي څخه وروسته په خپلو منځو کې متن ولولي.

ـ څو زده کوونکي دې د ټولګي مخې ته راشي، په وارسره دې د متن یوه یوه برخه ولولي او نور دې ورته غوږ ونیسي.

ـ یو زده کوونکی دې د ټولګي مخې ته راشي، څو جملې دې د کتاب له مخې ولولي او نور زده کوونکي دې په خپلو کتابچو کې د املا په توګه ولیکي.

ـ څو زده کوونکي دې د ټولګي مخې ته راشي، د پورتنیو خبرو اترو یوه یوه برخه دې تمثیل کړي.

| لغتونه | معناوې |
|---|---|
| نېټه | تاریخ |
| آزموینه | امتحان |

## کورنۍ دنده

زده کوونکي دې پورتنیو خبرو اترو ته ورته خبرې اترې په خپلو کتابچو کې ولیکي، بله ورځ دې دوه زده کوونکي هغه تمثیل کړي.

# زغم

**موخه**: د متن سم لوستل، لیکل او د زغم کولو په گټو پوهېدل.






## پوښتنه

تاسې کله د چا د تیري په وړاندې زغم کړی دی؟

**حضرت محمدﷺ د ستونزو په اوارولو کې له عدالت څخه کار اخیسته.**

**وايي کله به چې د اسلام ستر پیغمبر حضرت محمدﷺ د لمانځه د ادا کولو لپاره جومات ته روان و، په دې وخت کې یوې یهودۍ ښځې له بامه پرې خځلې راغورځولې او د حضرت محمدﷺ د ازار لامل کېده، خو حضرت محمدﷺ به زغم او صبر کاوه، دې کار ډېرې ورځې دوام درلود، خو څو ورځې د یهودۍ ښځې پته ونه لگیده، حضرت محمدﷺ په دویمه ورځ په جومات کې پوښتنه وکړه، هغه یهودۍ ښځه چې پرما یې خځلې را اچولې، چېرې ده؟ یوه تن ده مبارک ته ځواب ورکړ، هغه ښځه ناورغه ده، حضرت محمدﷺ د لمانځه له ادا کولو وروسته د هغې ښځې پوښتنې ته ورغی، د هغې د روغتیا پوښتنه یې وکړه، د حضرت محمدﷺ دې کار یهودۍ ښځه حیرانه کړه، د حضرت محمدﷺ دې صبر او زغم په نوموړې ښځې ډېره اغیزه وکړه، په همغه ورځ یې ایمان راوړ، مسلمانه شوه.**

## فعالیتونه

ـ زده کوونکي دې له ښوونکي څخه وروسته متن سم ولولي.

ـ دوه زده کوونکي دې په وار سره د تختې مخې ته راشي، یو دې له کتاب څخه یوه جمله ووایي او بل دې د املا په توګه پرتختې ولیکي، نور دې په کتابچو کې ولیکي.

ـ څو زده کوونکي دې په وار سره د تختې مخې ته راشي، هر یو دې د زغم په اړه یوه یوه جمله پرتختې ولیکي، نور زده کوونکي دې په خپلو کتابچو کې ولیکي.

ـ څو زده کوونکي دې په وار سره د ټولګي مخې ته راشي، د لوست مفهوم دې نورو ته ووایي، ښوونکی دې ورسره مرسته وکړي.

ـ دوه زده کوونکي دې د ټولګي مخې ته راشي، په وار سره دې د زغم د ګټو او ښېګڼو په اړه خبرې وکړي.

| لغت | معنا |
|---|---|
| حوصله | صبر، زغم |

## کورنۍ دنده

زده کوونکي دې د زغم په اړه څو جملې ولیکي، بله ورځ دې ټولګي ته راوړي، نورو ته دې ولولي.